# د ماښامونو ډیوه

## د شعرونو مجموعه

نجیبه «سارا بیابانی»




| | | |
|---|---|---|
| کتاب | : | د ماشومانو ډیوه |
| شاعره | : | نجیبه سارا بیابانی |
| خپرونکی | : | مظفر شاه اپریدی |
| مهتمم | : | ډاکتر محمد اعظم اعظم |
| د چاپ ځای | : | د فرنټیر پوست اداره |
| د چاپ شمیر | : | ۱۰۰۰ ټوکه |
| د چاپ کال | : | ۱۹۹۷ عیسوی |
| بیه | : | (۳۰) کلداری |
| کمپوز او دیزاین | : | محمد ابراهیم «امیری» |
| پشتی | : | مکنون مقصودی |

# د بیابانی په یاد

چه د لنډی مودی لپاره یی را سره د ژوند د یو خوږ ملګری په حیث ګام کیښود خو د وخت جابر قاضی پخپلی بی عدالتی د تل لپاره راڅخه بیل کړ او ده خپل خوږ ژوند دوطن او خلکو نه قربان کړ.

بسم الله الرحمن الرحيم

او د خپل خدای بښلی پلار په نامه چي
د لومړي ځل له پاره يې قلم په لاس کې راکړ



چې آغاز کې ليونتوب انجام به يې څه وی
په حيرت يم حقيقت مقام به څه وی



# لنډه پېژندګلوي

نجیبه سارا بیاباني د خداي بښلي ښاغلي حضرت میر خان لور
او د عبدالکریم خان لمسی ده په ختټه ابراهیم خیله ده چه په
کال ۱۹۶۳ ع کې د کابل ولایت د پغمان د ولسوالي د سینو بابا
په کلي کې زیږدلې ده په کال ۱۹۸۲ ع رابعې بلخي دلیسې نه
فارغه شوې ده چې د تحصیل په دوره کې ئي هم د رادیو افغانستان
سره همکاري درلوده په کال ۱۹۸۸ ع کې د رادیو افغانستان په
هنرو ادبیاتو کې د پردیو سرپه‌کار په رسمي توګه پیل کړ چې د
وخت د نامساعدو شرایطو په اساس له خپلو لوړو تحصیلاتو څخه
دوه کاله محرومه پاتې شوه په همدې لړ کې لیکوالي او نطاقي هم
کوله سارا برسیره پدې مصروفیت د فرهنګ مجلې او د قبایلو
جرګې مجلې همکاره هم پاتې شوې ده په د ۱۹۷۳ کال نه را پدې
خوا ئي په شعر ویلو نظم لیکلو پیل کړیدی چې تراوسه ئي په سونو
شعرونه او نظمونه لیکلې دي سربیره پدې سارا اوس (۶) مجمعې
شعرونه دوه مجمعې ازاده نظمونه یوه مجمعه د خپلې دایرې نه
ښکلې آدبي ملغلرې دوه مجمعي لندی کیسې او دوه ناوله لرې د

سارا یوه شعری مجمعه په ۱۹۹۲ کال د کابل په مطبعه کی چه د چاپ لاندی وه متاسفانه وسوزیده چه په همدی ۱۹۹۲ کال کی سارا پیښور ته راغله چه بیا په پیښور کی د پښتنو دوستانو په همکاري خپلی هلی ځلی پیل کړی سارا په پیښور کی د وحدت اخبار، هیواد اخبار او پامیر اخبار سره همکاری کړیده ددی په څنګ کی د پیښور په رادیو کی هم قلمی همکاری درلوده چه په ۱۹۹۳ کال کی د بی بی سی ایجوکیشنل ډرامو کی برخه واخیستته تراوسه پوری د لیکوالی په اړخ کی د بی بی سی سره قراردادی همکاری لری د ماښامونو ډیوه د سارا د شعرونو دا لومړنی مجمعه ده چی د فرنټیر پوست د ایدیټر ښاغلی مظفر شاه اپریدی په مرسته چاپ شوه همدا راز سارا په ډیر درناوی سره د محترم شاه صاحب نه مننه کوی او مونږ د سارا بی بی د نورو اثارو د چاپ کولو هیله لرو او ددی باهمتی پښتنی خور کامیابی غواړو.

د فرنټیر پوست اداراه

زړونو پرسوی لوئ صحرا وکری او پر سوی لوئ صحرا د شعرونو دداغلو غاړولو رنگین فصل را وتړوکوی. زه شعر ته په یوه عجیب تقدس قایل یم، زه له شعر سره د عبادت تر سرحده مینه لرم، خو زه د شعرونو کره کتونکی نه یم، د سارا شعرونه به د شعرونو کره کتونکو ته پریږدو، هسی می هم نه غوښتل چی پر شعرونو یی نقد او کره کتنه وکړم، خو کله می چی د سارا د یوه شعر مقطع ولوسته له نقد او کره کتنی نه یی ډیوه‌لری او غلی، غلی په څنگ تیر شوم.

دشعر مقطع داده :

که د سارا شعر ته غلط وایی څوك
هغه هم مینه په گوهر نه لری

نه پوهیږم سارا خور به گوهر په کوم مفهوم راوړی وی، گوهر له قیمتی مرغلرویی سره سره له اوښکو، ښکلا، سپیڅلتیا او پاکی لپاره استعاره کیدای شی. همدارنگه د ښکلا الهه "دیونان د ښکلا ملکه وینوس" له گوهر نه پیدا شوی ده.

له اوښکو، ښکلا، سپیڅلتیا او د ښکلا له الهی "وینوس" سره خو کرکه نه شی کیدای. مجبور یم چی د سارا شعرونو ته غلط و نه وایم او له "گوهر" سره د مینی په خاطر یی له غلطو شعرونو سره هم ناکام وکړم.

مونږ له یوی لسیزی زیات عمر له ویروونکو تکو تورو شپو له بوږنوونکو غیر شاعرانه او غیر عاشقانه ماښامونو له ژوبلوونکو او

وژونکو رڼاګانو او لمبو سره تیر کړی او لایی تیرو. موږ په سلګونو غمجنی، ویښی او زخمی شپی د ډیوو، شمعو، ستورو، سپوږمیو او عاشقانه او شاعرانه رڼاګانو په ځای د باروتو، توپ، توغندی، د ماشیګڼو د ګولیو او دالوتکو د بمونو په جهنمی رڼاګانو (۱) او لمبو رڼا، سپینی او سوی لوي لیدلی دی. موږ په رڼاګانو هم شکمن یو. د ایران او د شعرونو د نړی ددیری مشهوری ځوانیمرګی شاعری فروغ (فرخزاد) په قول :

(زمونږ د ژوند دښته له تیارونه ډکه ده، هغلته لری ډیر لری د نور دوه ټکی معلومیږی خو کیدای شی چی هغه هم دلیوه ستړګی وی).

خو موږ ګران لوستونکی له ویروونکو، ژوبلوونکو او وژونکو رڼاګانو پرځای لکه ناسوی پتنګان یوی شاعرانه، عاشقانه او غزلیزی رڼا ته رابولو. دا رڼا (دماښامونو ډیوه) یو ډیر ښکلی، عاشقانه، شاعرانه او غزلیزنوم دی چی ډیر می خوښ شو، حکه می خوښ شوی دی چی د ماښام د نوم په اوریدو می یوه غم انګیزه ښکلا په روح کی انځوره شوه. چی بیا ډیوه هم له ماښامونو سره غبرګه شی له یوی غم انګیزی ښکلا سره یوه بله زیږه انځوره غبږ په غیږ شی داسی لکه د محبوب په تورو او پریشانو څڼو کی د نرګس د ګلونو غنچه.

خدای دی وکړي چی (دماښامونو ډیوه) د خپل نوم غوندی

ښکلی وی او د لوستونکو د ذوق پرماښامونو د زیړی رڼا غزلیز لاسونه راتیر کړی.

زه نه پوهیرم چی دا لیکنه د (سارا) دورکو او شهیدو شعرونو مرثیه وبولم او که د ژوندیو شعرونو د خپریدو مبارکی.

خپلی خبری د سارا د یوه غزل په څو بیتونو رانغاړم، د شعر مینه وال یی د شعرونو لوستلو ته رابولم :

ساقی نه ولی وچ ولاړ یی راته
دسترګو اوښکې دی پیاله خو نه ده
د نیمه خوا مینی کورګی دی په کی
بیلتونه مه راځه دیره خو نه ده
د زړګی کور کی می یو ګل ښکاری
نامرده مه شکوه باغچه خو نه ده
د سارا د شعرونو د غوړیدو او ځلیدو په هیله
په پښتنه او شاعرانه مینه
کاروان

پیښور د ازاد افغانستان دلیکوالو ټولنه (وفا)

۱۳۷۵/٤/۸

# دسارا د ماښامونو ډیوه

د پښتنو زنانه ژ پ پحقله وئیلی شی چی دوی په فطری توګه شاعرانی وی دوی چی میچن ته ناستې وی نو هم یوه ټپه یا شعرئی په خله وی که ګودر ته د اوبو د پاره ځی نو هم د ګودر سره متعلقه ټپی یی بی ساخته له خولی وځې او که په نور څه کار کی مشغول وی نو هم مصری یا لنډۍ وایی. پدی وجه نقادانو د پښتو شاعری ابتداد ښځو پوری منسوب کړی ده دا څکه داکترو ټپو او ځینو پخوانیو شعرونو مخاطبه د ښځی لخوا سړی ته شوی ده د مسافری او فراق تزکری د عشق و محبت شدید کیفیات او نور د غسی واردات سړی ته د ښځی لخوا بیان شوی نو په دغه وجه د شاعرۍ شروع د ښځو برخه ګڼلی شی.

د زنانه د کلام زړی نمونی دپټی خزانی د شپږو زنانه شاعرانو نه پس په روانه شلمه صدی کی ډیری موجودی دی شلمه صدی کی چی سیده بشرٰی بیګم (س .ب .ب) کومه شاعری کړی ده اوسنیو په کی ددی دور زنانه شاعرانو نوری فکری اوفنی اضافی کړی دی.

افغانستان کی هر څو که د تخلیق په ځای تحقیق ته زیاته توجه ورکړی شوی ده او د مخصوصو حالاتو ترمخه ګټور تحقیقی کار شوی دی خو ولی بیا هم پکی شعر او افسانی او ادب لطیف په اضافو کی د اوچتی پائی ادب تخلیق شوی او په هغی کی د ښځو هم واضحه برخه ده.

په دغه قسمه شاعری ځینو ناقدانو دا تنقید هم کړی دی چی داقسمه شاعری کی تخیل او شعری نزاکت نه وی کوم چی د شعریت د پاره ډیر ضروری ده خو د سارا بی بی شاعری ددی قسمه شاعری بر عکس ددی په شاعری کی تخیل هم شته او شعری نزاکتونه هم او فنی ښکلاګانی هم سُرور او مستي هم شته.

رندی هم شته او شوخي هم دغه قسمه شاعری کې شعریت او تخیل په غټه پیمانه وی او دغه څیز د سارا په شعری مجموعه «د ماښامونو ډیوه» کی هم ښه پریمانه شته د تخیل او شعریت نه ډکه شاعري عموماً په صوری او تکنیکی لحاظ څه خو کمزوری هم لری خو دا قسمه تکنیکی او صوری لوازمات عموماً غزل د پاره لازمی ګڼلی شی او سارا د نظم شاعره ده پابند، ازاد، مصری او د ډاکټر زیار صاحب په اصطلاح سپین شعرونه یی هم لیکلی دی دا ازاد او مصرا نظم د رائج کیدلو په وخت ددی شدید مخالفت هم شوی وؤ چی پښتو کی ددی ځای نیول مشکل وی خو د وخت تیریدلو سره چی په شاعری کی چی رنګ رنګ تجربی او اضافی وشی نو دغه

قسمه نظمونو ته پښتو هم غاړه کیښوده او دا دی نن پکی د سارا غوندی پښتنی زنانه هم اضافې کوې د خوند خبره داده چی زنانه شاعرانو کی اکثرو ازاد نظم ته زیاته توجه کړی ده دا ازاد نظم که پښتانه مخالفت کوی او که موافقت خو رښتیا خبره داده چی د زمانی د بدلیدونکو حالاتو او په نړیوال ادب کې د فنې او فکرې جدتو نو ترمخه دا یو غټ ضرورت وؤ چی پښتو کی دې هم آزاد نظم رائج شې. دغو منشوری شاعری افغانستان کی ادبی ټوټی او پیښور کی ادب لطیف هم وئلی شوی دې افغانستان کی مرحوم عبدالحی حبیبی او موحوم گل باچا الفت د اقسمه ټوټی لیکلی دی او پیښور کې مرحوم راحت زاخیلې مرحوم دوست محمد کامل او مرحوم حمزهؒ بابا دا قسمه ادب لطیف تخلیق کړی دی او په ژوند کی د افغانستان داکتر زیار او محمد دین ژواك او پیښور کی د همیش خلیل ځینو لیکونو نه علاوه د هغه په افسانو هم دا مینه ماتیری.

دا سلسله اوس چی تر محترمی سارا بی بی راورسیده ځینی تجربی هم پکی وشوی په کومو چی د سارا بی بی نظر دی او د هغی په مناظرو کی یی خپلی ادبی یا هنری ټوټی تخلیق کړی دی په دغو ټوټو کی یی خوند هم شته او فکر هم او د ادب لطیف ښائسته نمونی دی؛

لکه دا دي سارا د ادب لطیف یوه نمونه

څومره مؤدبانه به می (تانه) ویل چی (تاسو) ستاسو جمله به می په هره خبره کی په ادب سره ویله چی تاسو څومره ښه انسان یاست خو په زړه کی به می ویل چی (ته) څومره راته گران یی.

او دایی هم د نظم نمونه

هر څه کیدای شی خو
هیڅکله داسی نشی کیدای
چی زه به ستایم
او ته به د بل
دا خیال دی
دا محال دی
د حقیقت نه لری
یو مجال دې
څکه چی مینه د عبادت نه کمه نده
او عبادت دروغ نشی کیدای ـــ

سارا بیابانی د پښتو شعر په میدان کی یو نوی نوم دی خو د
هغی د کلام د کتو نه پس په وړومبی نظر کی بنده دا محسوسه
کړی چی هغی یو بشپړ علمی او ادبی پس منظر لري او د هغی *
شعری ذوق یو سپیڅلی ذوق دي او د یو پاریدلي احساس میرمنه ده
دا څیزونه د معیاری شاعری د پاره بنیادی موادو د لټون بنیادونه
په ګټه کوی پاتی شوه د شعر د جوړښت د هئیت او لباسی ښائست،
نو هغه د وخت تیریدو او تجربی سره په خپله ځان برابر وی او پر مخ
تګ کوی خو ولی دا به هم مناسبه وی چی خپلی شاعری ته د هغی
دفن د خوبو سره د څینو وړو وړو خامو ښودنه هم وکړی شی سارا
د فکری او مضوعاتو په توګه د موجوده دور شاعره ده خو د بیان
اندازه یی او د وینا (لیك) طرز په طرز یی د فولکوری (اولسی)
شاعری اثرات ښرګند دی. چی هغه په ازادو نظمونو کی خو څه
معنی نه لری ولی په غزل یا په پابندو نظمونو کی د هغو پابندی
لازمی شی دی او زه د سارا بی بی پام دی ته په خصوصی ډول
راګرځول غوړام په مجموعی توګه د سارا شاعری د فکر او د تخیل
په ډګر کي دیره ښکلی او معنی خیزه شاعری ده د نوی وخت شعور
سره سره د یو خاص قسم جدت او تازګی لری او د تولونه غټ
صفت یی د الفاظو سادګی او د بیان بیساختګی ده او په داسی حال
کي چی زمونږ په ادب کی د زنانه و برخه لاتراوسه ډیره کمه ده د
سارا غوندی د بیدار ذهن لروونکو شریکوالی دم غنیمت دی. او

زمونږ د ادب په روښانه مستقبل باندې ګواهي کې زما باور دی چې
سارا که خپل شاعرانه صالاحیتونه په کار راوستل او د ادب مطالعه
یې جاري وساتله نو د پښتو شاعرۍ باغ باڼ ته به سدا بهار ګلونو
پیرزوئنې ورکړي.

سارا چې د پستنو د روایاتو یوه پابنده پښتنه پاتې شوی ده او
د ا خپل دستور د خپل تصور نه مقدم بولي او پښتنې حیاور باندې
غالبه ده ځکه له پښتو دستور نه پخپل شعر کې داسې ګیله کوي.

تـصـور راتـه تـصـویـر شـو پـه لـیـمـو کـې

خـپـې مې بندې د پښتـو پـه زنځیروکـې

چې بنګرۍ د سارا شرنګ کړي جتکه وخوري

چـې مـات نـشـې پـه دسـتـور د پـښـتـنـو کې

داسې معلومیږي چې سارا په سپین زړه سپینې خبرې کوي او
قاطع ځواب ورکوي او خپل غرور د پښتو ساتلو سره تړلی بولي
لکه چې وايي:

کِه سل ځله زړه ښه کړم چې ساقي نه د اجام واخلم،

خو پښتو کې یو پیاله ده جام نسکور دی پکې

په رستیا چې پښتنو میرمنو سره د حیا ساتنه د پښتو ساتنه ده
او د دستور ساتنه د دوی دلوړو سرونو د غرور ساتنه ده لکه چې د
سارا د دغه شعر نه ښرګندیږي چې په کومه اندازه د پښتنې میرمنې

سره د خپلی حیا سوچ وی چی حتیٰ د قلم په ژبه یی د شعر په الفاضو کی بیانوی لکه چی وائی:

هم په کتو هم نه کتو کی مرمه
لکه ډیوه په ادیرو کی مرمه
ماته ستا مینه کی حیا رقیب شوه
ځکه ذستور د پښتنو کی مرمه

او دائی هم د آدابی ټوټی بله نمونه

کله چی می هغه ستاسره اشنا کړ پوهیری؟
هغه ځما مینه وه
ځما د ټول عمر سرمایه
ځما ارزو
ځما اراده
ځما ژوند او ځما د ژوند کولو وسیله خو کله چی تا د خپل یوه گړی هوس د پاره له مانه پردی کړ
د ټول عمر له پاره راته پردی ښکاری
ته په نورو هوسونو کی ډوبه یی خو
زه دحسادت په اور کی د تل دپاره په هر چا بی اعتماده پاتی شوم.

دسارا په ادب لطیف یا ادبی ټوټی کې د ادب ډیری ملغری شته چی په پخپل یو سوچه شاعرانه تخیل یی امیل تری جوړ کړی دی.

او دائی هم د شعر یوه نمونه چی د مولانا رومی یا بلخی یو شعر یی پخپل روان قلم ژباړه کړی ده.

مولانا وائی:

بی همه گان به سر شود

بیتو به سر نمی شود

سارا وائی:

بیله هر چا په سر رسیٔ

بیتا په سر نه رسیٔ

ته خوږ دلبر ئی ځما

ځان او ځیگر ئی ځما

نورالبصر ئی ځما

شمس او قمر ئی ځما

بیله هر چا په سر رسیٔ

بیتا په سر نه رسیٔ

په پایٔ کی د سارا د لاکامیابی په هیله

داکتر محمد اعظم اعظم پیسور پوهنتون

۲۱ اگست ۱۹۹۷

---

ستار په آواز راغی نغمو سره مستانه
زاهد په نڅا راغې ساقې ته ئی ویل جانانه
چی کړنګ یی د پیالو شو ساقی په نڅیدو شو
هر کنج د عبادت نه مست راغی شو دیوانه
څوك دوب په عبادت کی څوك لار د حقیقت کی
څوك غرق په تصوف کی څوك زلفو کی زولانه
یو مست په تماشی ؤ بل مست په میخانی ؤ
څوك ښکلی لکه شمعه څوك ړوند لکه پروانه
صوفي په طریقت کې مست ښکاری په حیرت کی
آسمان په ژړا سر شو هم ځمکه شوه لړزانه
هر پانه کی حکمت شو هر جام کی شریعت شو
چی پوه په حقیقت شو نادانه شو نادانه
یو ویل چی دا جنت دی بل وی چی محبت دی
ښکاره چی حقیقت شو افسانه شو افسانه
چا لاس کی وو جامونه چا خوله کی آزانونه
دا جاته شوه روښانه چی څوك شوله یکدانه
څوك غرق په عبادت کی څوك غرق په محبت کی
څوك خاندي په وصلت کی څوك تښتي له خندانه
یو نوم یی دلیلا کړ بل نوم یی د شیدا کړ
نوم لاړود مجنون شو قیس ورك شو له خپل حانه
سوزونه او سازونه معشوق ؤ مکیزونه
عاشق ؤ نیازونه ښکلا مینه یی شانه

یو ځای کې عارفان ؤ بل ځای کی عاشقان ؤ
تسبوح سره پیر راغلی مرید پروت په خمخانه

محمود په پاچایئ کې ایاز په غلامۍ کې
بهلول په ملنګۍ کې بیکانه شو بیکانه

حافظ لاړ خرابات ته سعدی لاړ مناجات ته
دا دواړه مقامات ته جانانه شوه جانانه

هم شمس او قمر دواړه په مینه شوه ترغاړه
مدهوشه سره واړه دیوانه شو دیوانه

راغلئ له کعبی ؤ د ښکلو په وعدې ؤ
یو عشق ته په سجدی ؤ مستانه شو مستانه

ساقی لاس کې جامونه سر ګرم وؤ بزمونه
ټول ستوری په رقص راغلل سپوږمی شنه له خندانه

یو شمس شولو دیوانه بل بلخ کی شو مستانه
دا دواړه شوه افسانه پیمانه په پیمانه

یو خواجه عبدالله ؤ تل سوال کې له الله ؤ
منطق کې یی همتا ؤ دردانه شو دردانه

تلاش تلاش د ژوند ؤ په ژوند کی د عشق خوند ؤ
طبیعت کې یی هر رنك ؤ بیځانه شو له ځانه

چی ستوري شوه راسکته آسمان شو ملامته
پرده یی په مخ راغله چی سرهٔ شوه له حیانه

څوك تللی ؤ کعبی ته څوك تللی میخانی ته
«سارا» ستا ارادی تـه حیرانه شوه حیرانه

گل دی بهتر له ځان بهتر نه لری
د لاس آرا غیر له ساغر نه لری
بعضی وخت وینم خوشالي د دریاب
چی همیش دا صدف گوهر نه لری
په کلستان کی غنیمت گڼه وخت
بلی هفتی ته گل ثمر نه لري
د عاشق خواست گوره دمینی لارکې
بیله ژړانه بل هنر نه لري
که د معشوق په کور څوك سر درون کړی
عجایب لار ده مگر سر نه لري
که څوك همدرس د محبت د درس شي
نایاب د عشق علم دفتر نه لري
په میخانه کې چی څوك می خوري همیش
ښکلا د مخ یی هیڅ زیورنه لري
شیخه راپاڅه میخانی لوری ځه
هسی شراب گوره کوثر نه لري
هسی لعل گوره په زرین جام کې دی
که یی بیخي چاته هیح زرنه لري
ساقي شراب ته بی خماره راکړه
هغه چی ماته درد د سر نه لري

د خدای په نوم چی تن می هسی بت دی

چی بت خانه کې یی آزر نه لري

د زړه له کومی د سلطان بنده یم

په ما نظر که د چاکر نه لري

که د «سارا» شعر ته غلط وایي څوک

هغه هم مینه په گوهر نه لري

ما ویل زړه می دی ورکړی   ده ویل اور کې دی سیزلې
ما ویل څه وکړم عاشق شوم   ده ویل ځان دی کړولې
ما ویل پوه نه شوم ناپوه وم   ده ویل ژوند دې دی پلورلې
ما ویل اوس پسی ژړیږم   ویـــل ابـــداً ژړیـــدلـــې
ما ویل اوس می څوروی تل   ویل خوبانو رواج کړی
ما ویل کاشکی مرك یو دم وای   ده ویل ورو ورو دی منلې
ما ویل نور په نفس راغلم   ویل راځی نه یی راغلې
ما ویل څوك می چاره گر دی   ده ویل مرگ خو تښتیدلې
ما ویل چیرته به یی موندہ کړم   ویل بیابان کی مجنون وړې

ما ویل زه «سارا» خو مرمه
ده ویل بند دی دی تړلې

چی زما په کور کی ستا قدم ولګید
په زخمی زړه کې اغزی سم ولګید
په دی مانا چی ژوند بدل شو زما
په ډیر غمو د میني غم ولګید
دا ډیر دردونه یی په شا واړول
چی خوږ آواز می د همدم ولګید
لکه چی ما سره یي رنحونه نیم کړل
هسی می سوچ کې دا صنم ولګید
«سارا» چی مینه دی دوکه نکړي نن
پس له کلو نه دي چی دم ولیګد

سترگې تاته نه ګوري کتی نه شي
ستا ځینه حیا شوه غړېدی نه شي

شا او خوا پیره د رقیبانو ده
شونډې وچې شوي مسیدې نه شي

ځله مې رابولې خپلې غېږې ته
شرم د پښتو دې چې درتلای نه شي

ستا غوسه په مینه قبلومه زه
دا خو زما په مینه کې کمې نه شي

ښنده چې هوسې شي په دامونو کې
داد مینې هود دې تېښتیدی نه شي

تاته کیږجنه «سارا» ښکاري نن
ستا د عشق طوفان ته تمیدی نه شي

لویه خبر ده وره خو نه ده

تا ته ساده ښکاري ساده خو نه ده

آشنا مي ولي ما نه پیژنی دي رانه

وایه چي کړي یی ګیله خو نه ده

ساقي ته ولي وچ ولاړیی راته

دسترګو اوښکې دي پیاله خو نه ده

د نیمخوا میني کورګي دي پکي

بیلتونه مه راځه دیره خونه ده

چي د هر کور بله ډیوه مړه کوي

وایه صبا دي اندیښنه خو نه ده

ماسره ستا د بلي ورځي غم دي

تاته پلمهٔ ښکاري پلمه خو نه ده

د زړګي کور کي مي یو ګل ښکاري

نامرده میشکوه باغچه خو نه ده

«سارا» په ډاګه درته وایی واوره

د میني کار دی څه لانجه خو نه ده

۱۳۶۹/۱۰/۳

تصور راته تصویر شو په لیمو کی
خپی می بندی د پښتو په زنځیرو کی
عقل هوش می دادستور دی رانه وړی
که یی هر څومره خوندي کړم په بنو کی
هر ساعت چی د فلك ظالم له لاسه
د شفق بی رحمی وینمه پیالوکی
دا سرخي یی د شفق دوینو رنگ دی
کنی زیب کا چی داوی په اننگو کی
د ساقی لاس ته ناڅاپه سترگی واوړی
را په یاد شي ستا بیلتون په زولنو کی
چی بنکړي د «سارا» شرنك کړي جتکه وخوری
چی مات نشي په دستور د پښتنو کی

بیله هر چا په سر رسي
بیتا په سر نه رسي

شپه یم چی لمرنه رسي    بیتا په سرنه رسي
ته خوږ دلبری ځما    ځان او ځګر یی ځما
نور البصری ځما    شمس او قمر یی ځما

بیله هر چا په سر رسي
بیتا په سر نه رسي

* * *

ته ځما خواب وخوری    ته ځما راحت بستر یی
ته ځما وښ سحر یی    ځما سر تاج سرور یی

بیله هر چا په سر رسي
بیتا په سر نه رسي

* * *

باغ حرم می ته یی    زړه ته بیغم می ته یی
داغ ته مرحم می ته یی    محبوب صنم می ته یی

بیله هر چا په سر رسي
بیتا په سر نه رسي

* * *

که نه یی غم لرم    یو لوی ماتم لرم
سترګو کی نم لرم    دروغ چی صنم لرم

بیله هر چا په سر رسي
بیتا په سر نه رسي

* * *

ځما جنت ته يی ځما محبت ته يی
ځما کرامت ته يی ځما همت ته يی
بيله هر چا په سر رسي
بيتا په سر نه رسي
* * *

دم او قدم می ته يی د خيال همدم می ته يی
ښادي او غم می ته يی خوله کې هردم می ته يی
بيله هر چا په سر رسي
بيتا په سر نه رسي
* * *

سترګو ته نور شوی ته زړه ته سُرور شوی ته
روح په مُرور شوی ته ځان ته ضرور شوی ته
بيله هر چا په سر رسي
بيتا په سر نه رسي
* * *

ځما شباب شولی دعشق کتاب شولی
جهان ته تاب شولی ماته عتاب شولي
بيله هر چا په سر رسي
بيتا په سر نه رسي
* * *

ته د ظلمت نښه یی    د عدالت نښه یی
ته د غفلت نښه یی    د عبادت نښه یی
بیله هرچا په سر رسي
بیتا په سرنه رسي
* * *

څما هر څه یی ته    هم بد هم ښه یی ته
اختیار کې نه یی ته    څما په څه یی ته
بیله رچا په سر رسي
بیتا په سر نه رسي
* * *

څما ثمرته یی    آب کوثر ته یی
ژوند ته می زر ته یی    کور ته می لمر ته یی
بیله هرچا په سر رسي
بیتا په سر نه رسي
* * *

وصل ته باغ ته یی    هجران کی داغ ته یی
روح ته فراغ ته یی    فکر او ددماغ ته یی
بیه هر چا په سر رسي
بیتا په سر نه رسي
* * *

شمس شه رڼا غواړم    خپله دنیا غواړم
تا غواړم تا غواړم    تاته «سارا غواړم
بیله هر چاپه سر رسي
بیتا په سر نه رسي
* * *

٦/١٠/١٣٦٦

په کومو سترګو چې تا ماته کتل

ما به هغو سترګو کې تاته کتل

ولې د زړه په حال واقف نه شولې

پیوند د سترګو ؤ تا چاته کتل

ما د رقیب له ویرې ځان غولا وه

تاولې هو ځما یاناته کتل

دلته رموز ؤ ته غصه شوې ولې؟

په رمازه کې تا سلاته کتل

زه نه پوهیږم که ته ډیر پوهیږې

منم چې ډوب وې ما حیاته کتل

پښتنې سترګې مې وې ځکه تېتې

ما معاشرې ته تا«سارا» ته کتل

۱۱/۱۲/۱۹۹۳

مینه د یار می شوه غم غم غم
رقیب می وژنی هر دم دم دم
بیله تا یاره خپل ځان څه کوم
ځان لاته پریږده جهان څه کوم
بی له تا ژوند شو ماتم تم تم
ستا په مینه کی لیونۍ ومه زه
اور د محبت کی سپیلنۍ ومه زه
سترګو نه می اوښکی ځي نم نم نم
اوښکی می بهیږي بهیږي تل
زړه چی می کړیږی کړیږی تل
عمر د سارا شولو کم کم کم
رقیب می وژنی هر دم دم دم

ستا په وصال کې چې هجران وینمه
لکه سپرلي کې چې خزان وینمه
هسې سېکاریږې چې جهان خفه دی
چې می خفه د زړه آرمان وینمه
یو سپیلنې رانه جوړې شوې اورکې
چې دی د مینې ډیرګلان وینمه
زه سرګردانه پخپل ګل پسې یم
تاته چې ګورم خپل جانان وینمه
له مانه ورك دی چیرته یې ولتوم
هر خواته ګورمه زندان وینمه
زما مذهب کې خو یوه مینه ده
که داسې نوې ډیر شیان وینمه
سارا په دی آزمون بری اخلمه
زه خپل مجنون په بیابان وینمه

سترګو ته دی ووایه چی ماته کتل مه کوه

دی لوړو ژوروکې مزل ته تکل مه کوه

دا چی خندول یی ګران ژړل ورته آسانه دي

سوچ ته یی خزانه په سپرلي کې راتلل مه کوه

نه به شي څما ستا دنیا بیله څما بیله ده

ما سره بی وخته په هر لارکې مزل مه کوه

دردپکی نڅا کوي په سوز اوسازکی ژوند څما

مه خوره چورلکونه ته غورځنك په یو پل مه کوه

زه په یو نازك تار د خپل ذهن تړل شوی یم

ستړی به شی پریزده پرې ګران دی تړل مه کوه

زه په ډیر ورروکي لفظ څلور ټکو ژوندون کوم

لور نظر دی خپل که د سارا یې وژل مه کوه

ستا یه یاد

هغه چې ته به راشې زه به نه یم
که یم خو هسې، د کاته به نه یم

یا به ړنده له دې جهانه یمه
یا به لوېدلې لمرخاته به نه یم

دغه چې اوس دې انتظار باسمه
داسې به ته یې او دا زه به نه یم

له ځان سره به کله کله وایې
کاشکې چې ته وای همدا ته به نه یم

هسې «سارا» سره هجران انتظار
دواړه یوشوې نو خسته به نه یم؟

کرځم میخانو کې خرابو کې د رندانو
اوس یم تړل شوی په زنځیر د میخوارانو

نور می د شیخی له زاهدی نه په توبوتوبه
ورکه یی کړه لار لاړو په لار د گمراهانو

باسم انتظار که ساقي راکي جام د میو
وبه یی څښلم په سرو لبو په خیال کی د چشمانو

څومره به ژړیږم په هجران کی نه پوهیرم
کله به د وصل غږ په ماوشي یارانو

ستا د عشق په نوم چه حقیقت کی لیونی شومه
خیر سارا امید کړه په احمد د مینانو

کاشکی ما نه وای لیدلای
غږه می نه وای اوریدلای
ورنه . لری لری تللای
چه له ده نه ورکیدلای
پته مینه می ساتلای
هیچا هیچا نه لیدلای
زړه می تور شولو له مینی
چی له مینی تستیدلای
یوه زه وای یو جونګړه
چی ستا غم می نه لیدلای
نه دی غم وای نه دی درد وای
نه هجران چی ځوریدلای
کاشکې لری وای له غمه
نه بیلتون کې کړیدلای
د ځوانی عمر خزان شو
«سارا» ژوند دی دهجران شو

ما د عمرونو حقیقت واخیست
تا رانه لاس په دی ساعت واخیست

ما ویل چی څومره به اوږده شی مینه
څومره دی ژر رانه رخصت واخیست

په بزدلی دې راته زړه پریښوده
په ناکامی دی فراغت واخیست

څومره دی ډیری واسطی کړی پیدا
زه چی راضي شوم تا مهلت واخیست

یو تجربه می بله زیاته شوله
چی ورو قدم کې دی سرعت واخیست

بیام ته استاد ځما د وفا شوی ثابت
ځکه قلم نه مي فرصت واخیست

که می سوزونه په سازو شوه بدل
خو ستاله مینی می عبرت واخیست

زړه خو می نشته بیا بۀ چاته ورکم
نن می بی زړه ځانته نهضت واخیست

یوسف به خلاص دمجبوری له ژوند شي
که له عزیز نه یی عداوت واخیست

اوس خود مصر په کوڅو کی غږ دی
چی زلیخا عشق کی تهمت واخیست

نه به ښایسته یوسف نه عشق شي پیدا
خو ما «سارا» تری صداقت واخیست

۲۶/۱۲/۹۵

غم د جانان می په ګیلو کله ځي
د هجر داغ می په سلګو کله ځي

ساقي ته راوړه لږ شراب د مینی
د بیلتانه درد په نیشو کله ځي

په میکده کې که سر ننباسم
ځان غولول په میکدو کله ځي

د سترګو جام می ستا یادیږي ګله
هغه نشه می په خوبو کله ځي

هسی درد زه چی بی درمانه لرم
په دا داروو او دمو کله ځي

که د سارا روح ته راحت غواړی څوک
د «سارا» روح بی له لیدو کله ځي

۱۶/۶/۱۳۶۶



| | |
|---|---|
| مه ځه چی تا پسی ژړیږمه | تم شه چی تا سره لوبیږمه |
| هیلی می زړه ته سلسلی جوړوي | پوره کیدو ته یی هوسیږمه |
| د مینی ګل په مسیدو ښکاري | خزان ته یی مه پریږده مړه کیږمه |
| ته چی لماځی زه بیتا څه وکم | خیال کی هجران سره کډیږمه |
| پدی خو پوهه شه جدایي دوزخ دی | اوس په دنیا پکې سوزیږمه |
| تا چی ځما له کلي کډه وکړه | روح می له تن ځي روانیږمه |
| پدی وران کلي کی به څوک واوسی | چی بیله تا به زه اوسیږمه |

تا سره روح ځما له تنه ځي نن
که لاړشي زه سارا ورکیږمه

۱/۳/۱۳۶۲





کاشکی لیونی وای چی دنیا نه بی پروا وای
گرځیدی په غروکې یو موجوده د صحرا وای

نه می کور او کلی پیژندلی نه د خلکو وای
نه می وچ لامده لیدی په سترګو نابینا وای

نه د چا په غم کی وای نه ځما غم د چا زړه کې
نه د چا قفس کې اوسیدلې نه رها وای

یا خو چی ډیوه د ماښامونو د شاعر وای زه
یا د ماښام سترګه په آسمان کې یا صبا وای

ژوندکی می اختیاروای لکه بوټی په صحراکې شین
هر څه چی راتلل په ما زغمل می د بیدیا وای

کاشکی لیونی وای چی انسان سره می غم نه وای
نه د بیلتانه ژړا نه هجر د «سارا» وای

ما ویل ای شمعی دا ولی هسی ژړای
دې ویل نه گوري چي ورو ورو تته کیږم

ما ویل ولی دی خندا په رڼا پلوری
دې ویل صبر چی پتنگ ویلی کډیږم

ما ویل ولی بیا قاتله د خپل یار شوی
دی ویل مینه چی یوه شی محوه کیږم

ما ویل دا څنکه دنیا ده ستا د مینی
دی ویل زه خپلی دنیا ته رڼا کیږم

ما ویل ستا خپلی دنیا کې پتنگ شته دی
دی ویل هوزه هم هغه ته هوسیږم

ما ویل بیا به هلته څه ورسره وکړی
دی ویل ژوند مو سره یو دی خوشحالیږم

ما ویل دا څنگه فنا څنکه بقا ده
دی ویل زه هم په حیرت یم نه پوهیږم

ما ویل ماتم د نارام روح آرام راکړه
دی ویل زه هم د «سارا» ژوند ته ژړیږم

یو شمع می تصور کې ستا د مینی کړلو بل
رڼا یی کائیناتو کی خوره شوه په یو ځل
په ستورو کی خوره شوه تماشا زما د مینی
یو زه شوم وفا داره چی جهان راته کتل
جونګړه می د سین په غاړه جوړه کړه ځنګله کې
رڼا کې د سپوږمی می ښکلي مخ لید لکه ګل
غذا می وه ستا مینه او اوبه می خپلی اوښکی
عجیبه فلسفه کې چورلیدم لکه بلبل
دنیا می وه رنګینه په وسوزونو او سازونو
یو ژوند ؤچی دسین څپوکی وروسته وړاندی تلل
دا ته وی او که ژوند ؤ راته خوږ چی ټول جهان شو
خواږه ترخه می خوښ شوه هم ژړل هم می خندل
زه تا پسی روانه مرګی ما پسي روان
په دی مقابله کی زده کړه ما دغم زغمل
د سین هره څپه راته د تیر ژوند افسانه شوه
وږمه وریسی راغله ویل امید کړه په ازل
نغمی وی د مرغانو عظمتونه وو دغرونو
د ونو مقامونه په هر پاڼه یی لیکل
تیر شوي په دوی باندی خزانونه بهارونه
سبق یی ماته راکړو سوز او سازکی پایدل

عجیبه فلسفه ده هسی نوم ئی دی ستا مینه
که څوك پکی اوسیږی که راځی او که تری تلل
ګه غم دی که ښادي ده یو تلاش د محبت دی
ژړا ده که خندا ده ورکول که راکول
دا بحر دی بهیږی زما او ستا د مینی کور دی
زه ژاړم درنه غواړم په دی غاړه یو محل
تا زما د ضد دپاره محل جوړ په افسانه کړ
ستا مینی داسی یوړم چی ستا غیږ تاج محل شوه
آواز د سین د غرو په انعکاس کی راغی غوږته
چپه را باندی راغله او په مایی وخندل
ویل تیردی کړه دیرش کاله دری دپاسه لاهوس کړی
راپاڅه مازدیګر دی بلبل تا باندي ژړل

«سارا» په صحرا سره شوه خو منزل یی دی ورك کړی
قدرت ته په حیرت شوه چی دا څنګه جوړول

چې تصور کې مې دنیا جوړېدی
څومره به ښه وای چې رښتیا جوړېدی

هره لمحه مې په تور تم د بېلتون
په انتظار که مې صبا جوړېدی

ځما تخلیق عجیب قانون جوړکړی
چې په ژړا کې یې خندا جوړېدی

ما به له خلکو نه تل پټ ساتلی
که مې په وسه کې همدا جوړېدی

لمر او سپوږمۍ به ستا حسرت خوړلو
د زړه په کور که مې رڼا جوړېدی

د سیند څپو سره به تل خندېدی
که په ځنګلو کې مې پناه جوړېدی

ستورو به ځما په لمن سر اېښودی
که مې خالونه په سیما جوړېدی

چا به د چانه ګیله نه کولی
که په رښتیا ژوند د «سارا» جوړېدی

په زړکی دی ده مینه که سور اور دی پکی
چی سترګو ته دی ګورمه یو شور دی پکی

چی تا ته یی ثابته کړم نو سترګو ته می ګوره
ته ګوره چی د چا ښکلی انځور دی پکی

په مینه راته ګوره بانه ونه ځمبوئ
شي وران به چی زما د مینی کور دی پکی

پوهیرم چی می بخت د غم سیلی په څپو یوړ
څه وکړمه ناترس بیلتون یو زور دی پکی

خبره د هر کس ناکس که وړم نه می خوښیږی
نو ځکه چی له مینی می زړه تور دی پکی

دا ستا مینه می خوښه ده والله که ته پوهیری
له تانه که یی غواړم خو پیغور دی پکی

که سل ځله زړه ښه کم چی ساقی نه دا جام واخلم
پښتو کی یو پیاله ده جام نسکور دی پکی

ستا مینه لیونۍ ده او که زه یی لیونۍ کړم
«سارا» ستا پاکه مینه هسی پور دی پکی

نن مې ستا سترګو کې نشه ولیده
خدایږو نشه مې پښتنه ولیده

چې تنکۍ مینې پکې کور جوړ کړی
نن مې ها کور کې میکده ولیده

څومره خپه شوم چې پرې پوه نشومه
چې مې ستا سترګو کې پیاله ولیده

ما په تندی باندې خال تاته کیښود
تا ویل چې ما پکې کعبه ولیده

په زړه کې دار په سترګو ګورمه درته
شپه شوه چې خوله کې مې توبه ولیده

ساغر مې راوړلو چې مات یې نه کړي
«سارا» ستا سترګو کې بانه ولیده

ستا په یاد

چی پیدا شومه زنده شوم　　بیا اسیره د بنده شوم
لاس او خپی می دي تړلي　　په سرو سترګو می ژړلي
زړه ګوګل کي کړیدلي
له غمازه ژړیدلي
ژبه ګونګه شوه په خوله کې　　غوږ می کوڼ شو په هرپله کې
یا کوچیږ د دامانو وای　　چی کړدی می په دښتو وای
یا شاهین د هسکو غرو وای
یا په غاړه د رودو وای
یا هوسیږ د دامانو وای　　یا طوطی د شنو باغو وای
یا زیږ ځوان د پښتنو وای　　یا وحشی دښو ځنګلو وای
پښتنه پیغله وای ناسته
تور پیکی می وای آراسته
پاك شپونکي سره می ژوند وای　　چی می هلته د ژوند خوند وای
چی حغستلی می په غره کی　　پاکه مینه می په زړه کی
دا بی سره می غږ وای
در مو می راته بږوای
د ماښام په آذانو کې　　راروانه په ځنګلو کی
دانګ په لاس تن کی کوسۍ وای
پټ په خوله کې ګونګوسۍ وای

ورو ورو تلی د کږدی لورته     یا جونګړی ته یا کورته
راختلی چی سپوږمی وای     د مانښام په ګوله ګی وای
چی له لری می په غوږ وای     د شپونکي د شپیلۍ غږ وای
پوه به نه شی په بل خوند     څومره خوند کړی آزاد ژوند

څومره خوند پخپل زړه ژوند کړي
د «سارا» ژوند به څه خوند کړي

ستا د یادونو سره لوبي کوم
د غم خیالونو سره لوبي کوم

کله چی وران ګور د آشنا وینمه
هاسات غمونو سره لوبی کوم

زړه چی را تنک شی تنې وسپرمه
د پرهرونو سره لوبي کوم

کله ستا مینه خندوی می خیال کی
کله وختونو سره لوبي کوم

وختونه څرنګه په بیړه تیر شول
چی د سوچونو سره لوبي کوم

چی زنګوی می د بیلتون غېږه کی
ستا د تالونو سره لوبي کوم

دغه دردونه له «سارا» نه نه حي
چی له دردونو سره لوبي کوم

هغه چی زه یی هر زمان وخورم
چاته به وایم چی جانان وخورم

له ځوانی مخکی چا زړتوب لیدلی
مخکی له وصله دي هجران وخورم

خلك دي ډېر دي دجنت په تمه
زه دي دوزخ په دي جهان وخورم

زه دي ګلونه د سپرلي څه کوم
چی په سپرلي کي دي خزان وخورم

ستا د خزان خبر سپرلي کی راغی
ستا د لیدو تږي ارمان وخورم

زه دي دیدن په تمه تمه ناسته
په انتظار کې دي زمان وخورم

هغه سات رانغی چی ته به راشی
«سارا» امید کې زړه نادان وخورم

هم په کتو هم نه کتو کې مرمه
لکه ډیوه په ادیرو کې مرمه

ماته ستا مینه کی حیا رقیب شوه
ځکه دستور د پښتنو کې مرمه

په پسرلي کې می خزان لټوم
بیلتونه ستا په ناکردو کې مرمه

د مینی غږ، خوبي په مینه اورم
چی ورتلی نه شم حسرتو کې مرمه

چی می د خیال په غیږ کی تنګه نیسې
د طوفانی میني ځپو کې مرمه

«سارا» له لری نه ستا مینه سوزي
ځکه نژدي خو په نشو کې مرمه

چې پیدا په دې دنیا شوم ځنکه درد سره آشنا شوم
له ازله مې دا برخه چې دا ستا په مشغولا شوم

د پاپل اول قدم کې محبت سره یکتا شوم
په دویم قدم ستا لور ته د هر چا ځخه سیوا شوم

په دریم قدم دعشق کې په لټون کې د وفا شوم
څلورم قدم مې دا ؤ د هجران نه په ژړا شوم

په پنځم قدم له هر چا بیګانه په دې دنیا شوم
په شپږم قدم د وصل د یو شپې په تمنا شوم

چې په اووم قدم داخل شوم د ښو بدو نه جدا شوم
په اتم قدم مې سترګې انتظار د دورنما شوم

په نهم قدم بې هوشه او بې خوبه تر سبا شوم
په لسم قدم آرمان کې دیو ستوری په ثنا شوم

چې دلسو نه یو زیات شو د یوه نوم په وینا شوم
دوولسم کې چې داخل شوم خپل هدف ته با وفا شوم

لوی دفتر مې ځانته جوړ کړ چې روانه په بیدیا شوم
پخپل خیال کې ګرځیدمه چې له هر شی نه سیوا شوم

په تعلیم دعشق سینګار شوم خال او خط کې یې زیبا شوم
چې مې خوند د هجران ولید نور له هر شی بی پروا شوم

چې دمینې درس مې ولوست په تقدیر باندې عالی شوم
چې د عشق څپیره راغله زما په مخ مخ په یکتا شوم

په کچکول دقناعت کې د دادرست جهان پادشاه شوم
زه د خپل خیال په جونګړه د بې زړونو شاهنشاه شوم

د زړګونو غم د پاسه هم بامهر هم با وفا شوم
د خپل خیال په هوا لاړم چې په ټول جهان رسوا شوم

ژوند مې ټول شو مینه مینه
باوفا تاته «سارا» شوم
ستا په یاد

يه قلمه څه دي زړه کې دي اوس وايه !
د جانان د مخ ډيوه راته ښه ستايه !
ته تسکين زما د قلم قلم زړکی شه
ښی خوږی خوږی خبری راته ښايه !
چی په ژمنه او وفا ياندی ولاړ دی
د هغه آشنا په مينه راکه رايه !
هيڅ تاثير دا نصيحت د ناصح نه کړي
ځکه شيخ دزمانی شولو بد رايه

يه قلمه ! ته همراز شوي تسل راکړه
«سارا» اوري ورته ووايه له ورايه !

تیر دی څه په زړه کې شول آشنا راته
درځ چې مې په زړه کې شولو بیا راته

سترګی دي خوب راته ښکاره وایی
زما سترګو کې سوال ډیر شولو بیا راته

شین آسمان کی وریځ د باران نه ښکاری
دا ځلی به نه اوری رښتیا راته

ډکه پیمانه که بیا چپه شوله
مات به شي ساغر په دي دنیا راته

عشق خو بهانه راته د مرګ ښکاری
وایی جهان خوشی کړه «سارا» راته

سحرگه وه د شبنم اوښکی باران وي
راتوی شوي د گلرخ په زنخدان وي

ما ویل څه دي اوریدلي چی ژړېږی
ده ویل هی افسوس عاشق یی خو نادان وي

په حیرت یم چی ما ولي تپوس وکړ
زما ځواب کي چی بی صبره افسوس وکړ

پوه شوم زه چی «سارا» عمر دی برباد کړ
چی عاشق دی په تپوس باندی ناښاد کړ

سترګی په وره کې انتظار لرم
لکه په ګلو کې چی خار لرم

دومره الفت باندی دی څه وکمه
چی تصور ته دی تلوار لرم

چی دی لیدوته هوسیږم څومره
همره وصال ته پټ اسرار لرم

پلوله ستورو نه په شپه کی ډك کم
سبا په وریځ آسمان بیمار لرم

مینی دی مانه زلیخا جوړه کړه
کچکول په لاس سترګی په لار لرم

کنعانی مینی دی بی واکه کړمه
اوس د یو آه سره انکار لرم

صبر به څنکه ته «سارا» ته وزکړی
زه پخپل مینی اعتبار لرم

ستا به یاد

چی تصور کی دی تصویر ته یو نظر شم آشنا
لکه قدم چی بی اختیاره ږدم ابتر شم آشنا

څوك به دشمن شغلو ته وګوري په هسکو سترګو
بغیر له دی چی دی هم نوعه لکه لمر شم آشنا

تا کله هم په آئینه کې خپل جمال لیدلی ؟
چی ته سیلی شی راته خود به در په در شم آشنا

زما په سترګو کی ماښام د غریبانو ستوری
ورك به شی ستا رڼا ده ډیره څنکه درشم آشنا

مقام دی مه ټیټوه لاس لږ د امداد را که
دومره می پوی کړه چی خبر په سر او بر شم آشنا

هر غم او درد جهان رنګین جمال رنګین وینمه
څومره ښکلا دطبیعت .ده که خبر شم آشنا

لږ شان می پوی کړه چی عذاب د تنهایی وزغمم
دوزخ به ښه وی که وصال سره دی در شم آشنا

په دی کم زوري انسان نور لاڅه ستم کوی ته
«سارا» لږ پریږده چی پردئ نه در بهر شم آشنا

خوار شی رقیبه څه دی ښه جوړه کړه
په نوم د اجر دي بانه جوړه کړه

ستا خو هدف د خپل ذاتی ګټی ؤ
پکی دی څما نوم پښتنه جوړه کړه

دزره په کور کې می یو کور د مینی
تا د بیلتون پکی دیره جوړه کړه

تا د پښتو د جهالت په نامه
ماته د عمر اندیښنه جوړه کړه

ګله حیا کله یی دود او دستور
ښه په شریکه دي پلمه جوړه کړه

رقیبه وسوزی ایره ایره شې
ماته دی ټول عمر لانجه جوړه کړه

وسوه «سارا» د روایاتو په اور
ماښام بیلتون ترینه ډیوه جوړه کړه

د زړه فیصله داده چی ګیلو ته به درځم
هجران یمه ځپلی فریادو ته به درځم

بغیر له رقیبا نومي پیره په لاره نشته
تکل د مینی هوډ دي چی کیسو ته به درځم

ایرو کی یو سپرغی یمه لمبو کی نه ځایږم
اوس جوړه که لمبه شومه لمبو ته به درځم

کاروان د منزلونو شوم روانه یم په مخه
شوګیر بی خوبه کړي یم خوبو ته به درځم

پوهیږم رسیدو ته می د مینی لار اوږده ده
ستا مینه بدرګه شوه پسرلو ته به درځم

«سارا» دوخت قاضي چی په تازه ګۍ نه دی خوږ کړی
ګیله به له چانکړی خو میلوته به درځم

تاته خو په سترګو کې بل چا غمونه ایښي دي
ماته خو همتا په زړه کې سخت داغونه ایښي دي

اوس خویم حیرانه ستا علاج که خپل علاج وکړم
ماته خو علاج کې خپل آشنا دامونه ایښي دي

ماته خو دا مینه په آغاز او ختمیدو شوله
ځکه چی پښتو دا ناروا دودونه ایښي دي

اوس تری اووښتی نشم که واوړم لیونو سره
هسی خویی ماته د ژوندون دردونه ایښي دي

پریرده چی یاغي می دغه مینه ترقیامته شي
ځکه بی انصافو ورته دا قیدونه ایښي دي

هر کړی می خولی ته یوه آه بله لمبه ګرځی
دی بله لمبه کې یی عجیب سازونه ایښي دي

څومره بندیزونه د اشنا مینه کې وینمه
دا آغاز «شیارا» انجام کې څه سوچونه ایښي دی

سترګو مې رنګ واخیست دتورو شپونه
ستا د وصلت د انتظار لمحونه

تا د صبا په امید قتل کرمه
لکه شبنم څاڅم د ګل خوش بونه

لکه تور داغ د غاټول زړه کې ښکاري
دا غلی زړه ژاړي دا ستا د تلونه

د خزان رنګ زیړه ګونه کې ښکاري
دا وچې پاڼې د بیلتون راتلونه

پریشانې زلفې د ماښام نښه ده
د ډیوې اوښکه ده د لمر لویدونه

د «سارا» زړه د ماښامونو ډیوې
تاته ژړیږي، شومه دم دردوونه

أ

هسی غمونه راته ستا پاتی شول

چی می دا غونه د آشنا پاتی شول

زړه می نری نری خوږیږي یاره

چی آرمانونه راته بیا پاتی شول

چی تیر وختونه دی آشنا یادوم

د بیلتانه دردونه ځما پاتی شول

تیر پسرلی به بیا په خوب ووینی

دا امیدونه د دنیا پاتی شول

څومره دی غم څومره دی درد دی گله

چی دغه ټول راته «سارا» پاتی شول

نه چی په زړه کښې دی څه بیا سبکاري

د قلم ژبه په وینا سبکاري

څه دي پټ کړي دي په ډاګه یی وایه

ګرځی ککوکی دی زړا سبکاري

دسترګو کسي می ستا کور شو ګله

څله دی سترګو ویل چی دا سبکاري

اوس به بانه راته په څه کوی ته

چی دغه توله ستا ادا سبکاري

دا سلسلی د مینی څله څیړی

په دا رمزونو کی خو ستا سبکاري

خیال کی کیسی د مینی اورمه نن

نه چی جفا راته وفا سبکاری

بس دی بیلتون سره نور پریکړه وکړه

نن په موسکا درته «سارا» سبکاري

چی له حیا پر ما خولی راځی

ته راته وایی چی ولی راځی؟

لکه شبنم چی په گلونو اوری

دا ستا له خوا پما وږمی راځي

حیرت می یوسي بل جهان ته گله

چی ستا د مینی ولولی راځی

چی د .لاسو زنحیر چاپیر شي له ما

خولی ته بی واره می گیلی راځي

چی ستا د غیږی سمندر می یوسي

سارا ته هیلو کې لانجی راځی

بیا می دا ماشوم زړکی ژړېږی نن
ناز کوي مياز بين غواړي کړېږي نن

تش ګوګل کی غورځي په ترپکو دی
یار پسی سلګی وهي زورېږي نن

غواړي بی وفا آشنا چی تللی دی
هر خوا لالهناد پسی ګرځېږی نن

ژاړی هوسيږي آرماني سبکاري
ډوب په سمندر کی معلومېږي نن

ویښه به وي پاتی تر سهاره نن
ډیوه دماښامونو می مړه کيږي نن

جوړ می ورته تال کړو د فکرونونه
زانګي دی «سارا چی پی زنګيږی نن

ستا په یاد

زلیخا شومه د مصر په کوڅو کې
ګیلی اورم د الزام په زولنو کې

د یوسف د محبت سره آشنا شوم
ګرحم ورکه یم پخپلو او پردو کې

څه به وایم حقیقت چاته معلوم دی
نامعلومه شان منزل دی په مزلو کې

په الزام د عشق اخته شوم څه به وایم
ډوبه شوي یمه ویښه په خوبو کې

نه یو لاره نه ګودر راته معلوم دی
کله غرو کې په سوچو کله ځنګلو کې

ستا د مینی سوز او ساز راته محل شو
نور جهان شومه د مینی په خیالو کې

که ستا ډیره مجبوری وي خدای دی مل شه
د «سارا» ځای شو آخر ستا قدمو کې

خولی ته مې بیا چی نن ګیلی راځي
ستا د غمونو سلسلې راځي

لکه وږمه د صبا یی چی آشنا
دا ستا له خوانه ولولی راځي

د بیلتانه ظالم له لاسه می زړه
وایی پښتو کې حوصلی راځي

دغه دستور مې زړه تنګ کړی ګله
لکه ساه خیژي او خولی راځي

دومره حسوده ستا د مینی یمه
که د رقیب پتا وږمي راځی

د «سارا» زړه یي قبلولی نه شي
که دي پر بل سترګي خوږی راځی

چې مې زړه راته تسل ستا په کتو شي
یو څو څاڅکي می له سترګو په وتوشي
چې پیالۍ راته لبریزه شي جام جام شي
هله پوه شمه رقیب ته یار په تلوشي
بیا لمن له ستورو ډکه کم ماښام کې
تصور می په لتهون کی ستا د پلو شي
چې می هیلی د ماشوم په شانی ترپي
ستا د غیږی په احساس ساه په ختو شي

د ساقي نه می لاجام اخیستی نه وي
سور شفق داغ د «سارا» په اننګو شي

په سپيڅلي لمن هسی تهمتي شوم
اوس د شمعی په شان تته مهبتي شوم

هر اوښکه می رڼا د حقيقت شوه
هر لمحه کې د ژوندون خوږه هستي شوم

مانه څله امتحان اخلی د مينی
ستا له پاره زه پښتو نشه مستی شوم

که دانه منی نو سترګوته می ګوره
چی تصوير ستا راسره که د پردي شوم

ما «سارا» تالا والا د نيا دولت کړه
چی راګيره ستا دعشق په بی وسي شوم

۲۶/۱۲/۹۵

دا عجیبه ننداره ده نوم یی مینه افسانه ده
هر تیرشوی ورته یاد دی لکه سیند څپه څپه ده

* * *

په یو مخه لاروان دی پکی کرځه فلسفه ده
سرګردان به پکی ګرځی لږ خندا پکی پلمه ده

* * *

په ژړا نه پوره کیږی خو سوزونو کی نغمه ده
جوړوونکي سوزوونکي هم په دا هم په دغه ده

* * *

د خندا ژړایو سر دی هم یی وسوزی آیره ده
کله یی مست اولاپروا کړي کله یی ړوند کړي پروانه ده

* * *

لیونیان یی ننداره کړي څه عجیبه زمانه ده

تل تقدیر باندی الزام کړي
د «سارا» دغه بانه ده

۲۹/۱۲/۹۵

گلابو نه سپړل کيږي د اغزيو په درشل کې
له جامونونه تويېږي د بريښنا په يوه ځل کې

ستوري ستوري را بهر شي د آسمان په شنه لمنه
حوصله چې ورسره شي لوی منزل وهی يو پل کې

هسی مست انسان روان شي د کاروان په لويه لاره
درته رابه وړی گلونه درته کيږدي په اوربل کې

بی خودي به کړي آغازه کله سوز شي کله ساز شي
د «سارا» دپاره ژوند شي ستا د مينی تاج محل کې

ستا د یادونو سلسلی راځي
په خولی د مینی ترانی راځي

چی د بیلتون سره دي شپی تیروم
ناڅاپه خولی ته می ښیری راځی

چی می د سرو سترګو تپوس وکړي څوك
ترور حالت کې څه پلمی راځی

ماته خو ستا د مینی غیږ یادیږي
غم ته بانه درد بهانی راځی

شپی می بی تا په میږتون شوی اشنا
«سارا» ورځ وزکه شوه اوس شپی راځی

ماته د مینی نه شباب راکه
لږ دی په سترګو کې شراب راکه

چی دی بانهه په بیهو ولګیږي
داسی سترګك باندی خوب راکه

چی د رقیب څار نه ځان خلاص وګنم
په غلچکی نظر حساب راکه

چی په کتو کی دی نشه ودهٔ شم
شوګیرو شپوته می عذاب راکه

چی انتظار کې می دی لار څارله
«سارا» ته لږ دیدن صواب راکه

ساقي زه مست يم په چشمان دميوو
ځکه زه غوارم شي جهان دميوو
ما د غمونو باده وخوړله
ځکه ستا عشق کړمه نادان دميوو
ګوره زما دغه جونګړه کې نن
دي راټول شوي مينان دميو
که يی شاهان په جام د زرو کې خوری
ماته د سترګو جام دی جام دميوو
زه د تور بخت توری کوټی کې هميش
غوارم نشه په يو داستان دميوو
ځله «سارا» ته نصيحت کوی ته
ځی په جانان پسی په شان دميوو

چې بانړه راته په قهر شي انداز کې
په غزل مې زلزله راشي په ساز کې

تزلزل راته د مينې په کور راشي
خپل محل وينمه ستا د سترکو نازکې

پام چې وران مې دا دمينې محل نکړې
د بنو په زمبيدو يم اعتراض کې

ژوند او مرګ مې ستا د سترګو رپ کې وينم
چې غصه شې لا ى اور خوبښ دى ګداز کې

ته چې اورشى زه لمبه لمبه د مينې
«سارا» سوز و ساز انجام شي په آغاز کې

۱۷/۹/۹۳

زړه می غواړي لاړه شم پرواز وکم
باد شمه وږمو غوندی آواز وکم
غاړه غړی گل سره په مینه شم
ورو ورو ترینه تاوشمه آغاز وکم
وريځ شمه باران د پسرلي شمه
ښه هوا د پاڼو منځ کې ساز وکم
ورو ورو روانیږم سمندر خواته
غږ د هر څپی سره پټ راز وکم
تیره شم ساحل نه غره ته راشمه
دغه ډیرو غرو سره څه ناز وکم

دی نه هم چاپیره گرده وگرځم
لاره شم «سارا» بیا بل آغاز وکم

## ای غره:

ستا د ښکار هوسۍ یمه
تانه سپیلنۍ یمه
مینی نه دی ځارشمه
چی بنده ستا داموکې یم -------- خوښه پدی غرو کیېم
دغه لویه دښته ستا
د عشق لویه فضا ده
لایتنهایي ښکاري
ستا هجرته فنا ده
لاس په لاس کې راکه
ستا دمینی ترانو کې یم -------- خوښه پدی غرو کې یم
ځو به دواړه ځوبه
دی دنیا نه بل جهان ته
ورو ورو به رسیږو
له دی مینی خپل آرمان ته
لاس تر غاړی راشه
زه «سارا» ستا په نشو کې یم
خوښه په دی غرو کی یم

په دښتو په دامانو کې د طبیعت په منظرو کې
ځما د خیال کږدی ولاړه د سپرلي په ننداروکې
تور می بخت توره کږدی وه لری شوی له ښادی وه
تسلیم شوی وه ازل ته تمه داره دسیلی وه
چی به کله راروان شي دغه باد به سرگردان شی
چی چپه د خیال کږدی شي سترگی پټی له جهان شی

د «سارا» دغه خیالونه
همیشه پی خوری تپالرنه

څه ولیکمه نه پوهیږمه زه
د خپل قلم نه چی ویریږمه زه
څه ولیکمه چی قلم وایی
یا ولیکمه چی صنم وایي
یا ولیکمه د زړګي دردونه
که یی خوندي کمه داپټ رازونه
قلم خو وایي چی خندا ولیکه
زړګی می وایي نه ژړا ولیکه
اوس د قلم د خولی خندا ولیکم
که د خپل زړه رضا ژړا ولیکم
کله د ګلو منځ کي ګډه شمه
کله اغزو سره همدمه شمه
کله بلبل وایي ګلزار ولیکه
کله ډیوه وایي انګار ولیکه
چی می دا هوښکی په څپو راشي
هغه دم ماته سمندر جوړشي
حوصله وایي چه یو غر ولیکه
ځما د صبر پس منظر ولیکه
تحمل وایي لویه لویه لمن
ته د کوچیانو په صحرا کي ګوره
په لویه دښته کي کږدۍ ولیکه
یا دمعصوم شپونکي شپیلۍ ولیکه
یا د سیرلیو د نارو سره سم
یا د پونکي هیاهوی سره سم

یا مازیگر یایي ماښام ولیکه
یا د شید و هغه ډك جام ولیکه
بیایی د مینی دنیاگی ته راشه
یا د جونگړی پناگی ته راشه
یایی بیلتون د تورو شپو ولیکه
یایی وصال د زیارتو ولیکه
یا د یو پاکی پستنی پیغلی چی
په سپیحلتوب کې تورپیکی سپینوي
راشه یو خدای او یو مین ولیکه
یا د هجران خزان چمن ولیکه
چی ډیوه بله شي کږدی ‌شی رڼا
یا د شفق په بی رحمۍ شي صبا
بیا پت پتانه د ځنگل ولیکه
یا سترگی سیل کې د یو بل ولیکه
دواړوته گوره چی خندا کوي
څومره د یو بل نه حیا کوي
مینی ته یی گوره یو مین ولیکه
د یو بل غم کې یی غمجن ولیکه
بیلتون که راغی بیا تباه به شی
د یو بل مینه کی [illegible]
بیا نه لیدلی د «سارا» ولیکه
نه لوبیدلی نه شیدا ولیکه

ورغلم زندان ته دیدنو نوبار تړلی ؤ
راغلمه خپل کورته امیدونو بار تړلی ؤ

داسی می ناره کړه ای ظالمه دادی څه وکړل
وامی ورید څواب لاړو وختونو بار تړلی ؤ

کیناستمه هسی د مجبور ژوندون په سوچ کې
ځکه چی عذرونو او سوالونو بار تړلی ؤ

هغه تیر وختونه او د هیلو ډك زړګی څما
ټولی نیمخوا شوي آرمانونو بار تړلی ؤ

پلانی می په زړه باندی آرمان د یو دیدن شولو
خیال کی می شپه تیره شوه خوبونو بار تړلی ؤ

اوښکی می بهر کی د سکښي ماښام ډیوی شولی
توری شپی «سارا» شاته غمونو بار تړلی ؤ

پلچرخی ۲/۹/٦٥






